# داسلام غزوات اوسرایا

## احد جنګ

### یوپښتمه برخه

### ابـوظـهـیر

علامـه زرقـاني رحمه الله وايي: قریشو سره احد تـه راغلـو میرمنـو کـې د "خنـاس بنـت مالک" او له "عمره بنت علقمه" پرتـه نورې ټولې په اسلام مشرف او په اسلام وفات شوي دي.

قریشو دخپل لښکر په "میمنه" "خالدبن ولید" په "میسره" "عکرمه بن ابي جهل" په "سپرو صـفوان بـن امیـه" پـه "غشـو ویشتونکو عمروبن العاص" په بل روایت: "عبد الله بن ربیعه" وګومارل، چې وروسته دا پنځه واړه امیران په اسلام مشرف شول (رضی الله عنهم)

احد کې مجاهدینو ته درسول الله(ﷺ) وینا:

دمجاهدینو صفونه جوړ شول، رسول الله(ﷺ) لاس کې یوه توره ونیوه او وي وفرمایل:

مَن یأ خذُ هَذا السَیفَ بِحقِه

ژباړه: څوک دی چې داتوره له خپل حق سره یوځای واخلي؟

ددې سعادت ترلاسه کولو لپاره ګڼ لاسونه جګ شول، لیکن رسول الله (ﷺ) خپل مبارک لاس ونیـو، ابـو دجانـه (رضي الله عنه) ولاړ شو، عرض یې وکړ: یارسول الله! ددې تورې حق څه دی؟ رسول الله (ﷺ) وفرمایل: ددې حق دا دی چې پرې دخدای (جل جلاله) دښمنان ترهغه ووژل شي څو هغوئ ځملي.

دا روایـت پـه مسـند احمـد او صـحیح مسلم کې د حضرت انس (رضي الله عنه) نه او په معجم طبراني کې له قتاده بن نعمان رضي الله عنه او په مسند بزار کې له حضرت زبیر (رضي الله عنه) څخه روایت شوی دی.

"حافظ ابو بشر لابی" دا حدیث په "کتاب الکنی" کې له حضرت زبیر (رضي الله عنه) روایت کړی دی.

په دې کې دي چې رسول الله (ﷺ) وفرمایل:

ددې تورې بل حق دا دی چې په دې هیڅ مسلمان ونه وژل شي او له هیڅ کافرنه مقابله کې تیښته ونکړي.

ابو دجانه (رضي الله عنه) وویل: یارسول الله (ﷺ) زه دا دخپل حق سره یوځای اخلم! یعنې ددې حق ادا کوم، رسول الله (ﷺ) سملاسي هغه توره ابو دجانه (رضي الله عنه) ته ورکړه، غالباً دالهي وحي په زریعه رسول الله (ﷺ) ته دا جوته شوي وه، چې دابو دجانه پرته بل څوک ددې تورې حق نشي ادا کولی، له دې وجې یوائې یې ابو دجانه (رضي الله عنه) ته ورکړه. والله سبحانه وتعالی (الاصابه ۴ټوک، ۵۸مخ)

ځیرنه: ابو دجانه (رضي الله عنه) ډېر زړور او شجاع و، په هغه دجنګ په دوران کې (تبختر) یعنې دناز انداز، وجد او سُکر یو خاص کیفیت خوت، دجنګ وخت کې به یې په سر، سره پګړۍ تړله، مکیز مکیز (ناز،ناز) به ته؛ غالباً رسول الله (ﷺ) توره ورته په دې ورکړه، چې نوموړی نهایتي زړور و، چې وروسته به دنوموړي دجهاد او قتال له کارنامو هم جوته شي:

## دجنګ پیل! او د قریشي مبارزینو یو، یو وژل:

قریشو له لوري، ترنورو لومړی میدان ته "ابوعامر" ووت هغه دجاهلیت په زمانه کې داوس قبیلې سرادرو، دزهد له وجې خلکو راهب باله، کله چې مدینې منورې ته د اسلام وړانګې ننوتې، دهغه خیرنو سترګو یې دلیدو تاب رانه وړ، او له مدینې څخه مکې ته وتښتیده، په دې وجه رسول الله (ﷺ) ورته دراهب په ځای دفاسق نوم غوره کړ.

همدې فاسق مکه کې قریش درسول الله (ﷺ) مقابلې ته آماده کړل، او د احد جنګ ته خپله هم دهغوئ سره یوځای راغی، او په دې باورو، چې داوس قبیلې خلک کله ما ووینې هغوئ به دمحمد (ﷺ) څخه جلا او ماسره به ملګري شي.

**لومړی مبارز:**

په دې وجه هغه (ابو عامر) په احد کې ترټولو لومړی میدان ته راغی او چیغه یې وکړه:

یا معشر الاوس آنا ابو عامرِ

داوس ډلې! زه ابو عامر یم

په اوس قبیلې دي دخدای رحمتونهوي هغوئ ورته وویل:

لا أنعم الله بک عیناً یافاسق

اې د خدای نافرمانه ! او فاسقه، خدای دې هیڅکله ستا ستر ګې یخې نکړي !

ابو عامر ددې غاښ ماتوونکي ځواب په اوریدو شرمنده او رسوا بیرته ستون شو وې ویل: ځما وروسته ځما د قوم حالت بدل شوی دی.

**دویم مبارز:**

دهغه وروسته دمشرکانو علمبردار "طلحة بن ابی طلحة" میدان ته راغی، هغه چیغه کړه:

اې دمحمد (ﷺ) ملګرو تاسي ګمان کوئ چې مونږ به ستاسي توري دېر ژر جهنم ته ورسوي او زمونږ توري به تاسي جنت ته ورسوي، نو پس شته په تاسو کې داسي څوک چې هغه ځما توره ژر جنت ته ورسوي یا دهغه توره ما جهنم ته ورسوي !

حضرت علي (رضي الله عنه) پورته شو دهغه مخې ته ورغی ورباندې دتورې په لومړي ګذار یې دهغه پښه پریک کړه ، پړمخ پریوت آن چې عورت یې لوڅ شو ، حضرت علي (رضي الله عنه) ته حیا ورغله او ترې بیرته په شاه لاړ، رسول الله (ﷺ) وپوښتل: علي ولي په شاه راغلي؟

علي (رضي الله عنه) وویل: دهغه عورت لوڅ شو، ماته حیا راغله (زرقاني ۲ټوک ۳۱مخ )

ابن سعد وايي: حضرت علي (رضي الله عنه) دهغه په سر دتورې دومره قوي ګذار وکړ، چې په وجه یې سر دوه ټوټې شو.

رسول الله (ﷺ) خوشال شو او د الله اکبر ناره یې په لوړ غږ وویله ،مسلمانانو هم دالله اکبر ناره پورته کړه.

غالباً حضرت علی (رضي الله عنه) لومړی دهغه په پښه برید وکړ، بیا یې دسر په کوپړۍ او ټوټې شوه، دابن جریر په روایت لومړی ذکردی، او دابن سعد په روایت کې دویم، له دې وجې د دواړو روایتونو ترمنځ تعارض نشته

**دریم مبارز:**

وروسته "عثمان بن ابی طلحه" دمشرکانو بیرغ پورته کړ، هغه دا "رجزیه" شعر په ویلو میدان ته راغی:

اِنّ علی اَهلِ اللِواءِ حقّا ۰ اَن تخضِب الصعدۃُ اَو تَندقا

په بیرغ پورته کوونکي فرض ده چې په جنګیدو جنګیدو کې دهغه نیزه ددښمن په وینو سره او یا ماته شي.

هغه ته حضرت حمزه (رضي الله عنه) ورووت، دعثمان په دواړو لاسونو دتورې حمله وکړه او دواړه مات شول ، بیرغ ترې پریوت او ژر دخپل بد عمل په سزا ورسید.

**څلورم مبارز:**

دهغه په تعقیب "سفیان بن ابی طلحه" بیرغ ونیو، "سعد بن ابي وقاص" (ﷺ) هغه په غشي وویشته، غشی یې په حلق کې ننوت، په دې سره یې ژبه بیرون ووته او سملاسي ومړ.

**پنځم مبارز:**

د سفیان بن ابی طلحه نه وروسته "مسافع بن طلحة بن ابی طلحه" بیرغ پورته کړ، هغه حضرت "عاصم بن ثابت" (ﷺ) په لومړي ګذار جهنم ته ولیږه.

**شپږم مبارز:**

بیا "حارث بن طلحة بن ابي طلحه" بیرغ واخست، هغه هم عاصم (ﷺ) په یوه وار قتل کړ په بل روایت: حضرت زبیر (ﷺ) قتل کړ.

**اووم مبارز:**

ورپسي "کلاب بن طلحة بن ابي طلحه" بیرغ واخست، هغه زبیر (ﷺ) قتل کړ.

**اتم مبارز:**

دهغه وروسته "جلاس بن طلحة بن ابي طلحة" بیرغ جګ کړ، هغه ژر حضرت "طلحه" (ﷺ) قتل کړ.

**نهم مبارز:**

بیا "ارطاة بن عبد شرحبیل" چې څنګ بیرغ را واخست، حضرت علی (ﷺ) یې کار تمام کړ.

**لسم مبارز:**

دهغه پسي شریح بن قارظ "بیرغ واخست، هغه هم دستر ګو په رپ کې ووژل شو، لیکن دهغه دوژونکي نوم نه دی معلوم.

**یوولسم مبارز:**

بیا یوه "غلام" صواب بیرغ ونیو، هغه حضرت "سعد بن ابي وقاص" (ﷺ) یا حضرت "علی" (ﷺ) یا حضرت "حمزه" یا "قزوان" لخوا ووژل شو. (زرقاني (۲ټوک ۳۱مخ ابن سعد لومړی ټوک ۲۳۰مخ)

کله چې دیوبل وروسته پرلپسي دمشرکانو دومره ګڼ بیرغ پورته کوونکي ووژل شول، د مشرکانو په روحیاتو یې دېر سخت اغېز وکړ، هغوئ دومره وډار شول چې په تیښته شول، حالنکې دهغوئ میرمنو بد دعاوي کولي، مسلمانانو په هغوئ حملي کولي، هرځای یې چې نیول هلته یې قتلول، په دې توګه دقریشو دوه یشت سرداران قتل شول. چې دهغوئ ټولو نومونه علامه ابن هشام په تفصیل سره ذکر کړیدي او ورسره یې دا هم ښودلې ده چې فلانی، فلانی سردار دفلاني فلاني صحابي لخوا قتل شوی.

**دابودجانه (رضي الله عنه) بهادري:**

ابود جانه (رضي الله عنه) ته چې رسول الله (ﷺ) خپله توره ورکړې وه ، هغه نهايتي زړور اوبهادرو ، کله چې جنګ پيل شو نوموړي (رضي الله عنه) خپله سره پګړۍ راويسته اوپه سر يې کړه ، دخپل عادت سره سم پخپل حيرانوونکي اندازېي ميدان ته ودانګل او دا شعرونه يې ويل:

انا الذی عَاهَدني خَليلی ونحنُ بالسفح لَدی النّخِيل

زه هغه يم چې مانه خپل هغه دوست عهد اخستی( دکوم محبت چې څما په زړه کې ننوتی دی يعني محمد ﷺ ) په داسي حال کې چې مونږ دغره په لمنه کې نخلستان ته نيږدې وو !

ان لاٗ اقُومُ الدّهر فی الکبول اضربُ بِسيف الله والرسول

هغه عهد دادی چې چې هيڅکله به په وروسته صف کې نه دربږم ، دالله او دهغه درسول په توره دهغه دښمنان به واهم.

رسول الله (ﷺ) ابو دجانه (رضي الله عنه) وليد چې مکيز (ناز،ناز) روان و ، وې فرمايل:

داسي تګ دالله (جل جلاله) خوښ نه دی، خو په دې وخت کې !

يعنې يو اځې دالله جل جلاله او دهغه درسول ددښمنانو دمقابلې لپاره وي نه دخپل نفس اوتکبرلپاره !

ابودجانه صفونه ماتول، دمړو تنې په ځمکه پريوتې، تردې چې دابوسفيان ميرمن "هنده" ورته مخې ته راغله ، ابو دجانه (رضي الله عنه) په هغې له ګذار کولو نه ډډه وکړه ولې دا ورته ښه ښکاره نه شوه چې درسول الله (ﷺ) په توره يوه ميرمن ووژني.

په يوبل روايت: کله چې ابو دجانه (رضي الله عنه) "هنده" ته ورسيد هغې خلکو ته دمرستې لپاره چيغې کړي، خو هيڅ تن يې دمرستې لپاره رانغی، ابو دجانه (رضي الله عنه) فرمايل:

ماته دغه مهال ښه ښکاره نه شوه چې درسو ل الله (ﷺ) توره ديوې بې پناه او بې مرستې ميرمنې په وينو سره کړم( البدايه والنهايه ۴ټوک ۱۲مخ)

**دحضرت حمزه (رضي الله عنه) شجاعت او شهادت:**

دحضرت حمزه (رضي الله عنه) دزمري پشان حملو کفار سخت پريشان کړل ، په هر چا به يې چې توره پورته کوله دهغه لاش به په ځمکه پريوت ، وحشي بن حرب چې دجبير بن مطعم حبشي غلام و ، په جنګ بدر کې دجبير تره "طعيمة بن عدی" دحضرت حمزه(رضي الله عنه) په لاس قتل شوی و ، جبيرته دهغه په وجه

سخته صدمه رسیدلې وه ، جبیر وحشي ته وویل:

که تا ځما د تره په بدل کې حمزه قتل کړ، نو ته به ازاد وې.

کله چې قریش احد ته روان شول وحشي هم له هغوئ سره یو ځای روان شو.

په احد کې چې کله د دواړو لوریو صفونه جوړ شول او جنګ پیل شو ، نو "سباع بن عبد العزیز" هل من مبارز؟ شته څوک چې ما سره مقابله کړي؟ په ناره میدان ته راغی:

حضرت حمزه (رضي الله عنه) په ورتلو کې وویل:

اې سباع ! د میرمنو ختنه کو نکې ښځې ځویه ! ته د الله او د هغه د رسول مقابله کوې؟

هغه یې په سر وواهه او د مرګ په خوب یې ویده کړ.

وحشي حضرت حمزه(رضي الله عنه) باندې د حملې لپاره د یوې تیګې لاندې پټ ناست و ، کله چې حضرت حمزه(رضي الله عنه) له هغه ځایه تیریده، وحشي نامه کې په نېزه وواهه، څو ګامه لاړ پریوت او د شهادت جام یې نوش کړ انا لله وانا الیه راجعون

...... نوربیا

د

**امیر المؤمنین علي ابن ابی طالب (رضي الله عنه) کورنۍ، ژوند او په راتلونکي یې اغېزې :**

لیکوال د اسلامي نړۍ مفکر عالم

مولانا سید ابوالحسن علی ندوي ژباړه شهاب منصور اتمه برخه

**له مېني او شفقت نه ډک نوم:**

د ډېر محبت او شفقته رسول الله (صلی الله علیه وسلم) حضرت علی (رضي الله عنه) ابوتراب ویلي، حضرت عبد الله بن عباس (رضي الله عنه) وایي: یوه ورځ حضرت علی(رضي الله عنه) سیده فاطمه(رضي الله عنها) ته ورغی، بیا مسجد ته راغی او څملاست، دې کې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د حضرت فاطمه (رضي الله عنها) حجرې ته لاړ او له حضرت فاطمې (رضي الله عنها) نه یې وپوښتل: ستا د اکاځوی چیرې دی؟ ویلې: مسجد کې دی، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) مسجد ته راغی، ویني څادر د هغه د ملا نه لویدلی او په خاورو لړلی دی، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) پخپلو مبارکو لاسونو د هغه له ملا نه خاورې وڅنډلې اودوه ځله یې وفرمایل: "اجلس یا اباتراب" اې

ابوترابه کینه !دابوتراب لفظي ترجمه ده:په خاورولړلی)

په بدر الکبری کې دحضرت علي کارنامې:

په دویم کال دهجرت رمضان کې دبدر جنګ پیښ شو، دا هغه فیصله کونکی جنګ و، چې نه یو اځې په برکت یې داسلامي امت او اسلامي دعوت لپاره لارې پرانیستل شوې، بلکې دتاریخ لوری یې بدل کړ، (ددې جنګ ټول تفصیلات دسیرت په کتابونو کې شته دلیکوال د کتاب السیرة النبویه ۲۱۵ نه تر ۲۲۸مخ وګورئ)

کله چې رسول الله (ﷺ) په دې جنګ کې قدم کیښود، او مخامخ خلکو ته یې دجنګ او مقابلې ترغیب ورکړ، نو دمسلمانانو دمقابلې لپاره "عتبه بن ربیعه" دهغه ورور "شیبه" او ځوی یې "ولید" میدان ته ووتل، کله چې دواړه لورې یوبل ته مخامخ شول، کافرانو وپوښتل تاسي څوک یئ! هغوئ ځواب ورکړ دانصارو یوه ډله یو! هغوئ ویل: تاسي ښه خلک یئ، اوزمونږ مقابل یئ! خو مونږ غواړو چې مونږ ته خپل ورونه اوخپلوان مخ ته راشي!

رسول الله (ﷺ) دنورو په نسبت له دینه زیات خبروو چې میدان ته راوتلي قریشیان څومره قوي اوتجربه کار جنګیالي دي؟ هغوئ په حربي فنونو پوهیدل اودجنګونو سره اشناوو، دداسي زړورو جنګیالیو دفرمایش په

اوریدو رسول الله (ﷺ) وفرمایل: حمزه پورته، علي پورته، ابوعبیده پورته !دا دریواړه دخپلوئ او وینې له پلوه رسول الله (ﷺ) ته نیږدې وو، اوترټولو ورته زیات ګران وو، خو کله چې دخطر نازک وخت راغی، دنورو په ځای یې هغوئ مقابلې ته وړاندې کړل، میدان ته دهغوئ په ننوتو کفارو وویل: هو !دا زمونږ سره برابر او دنسب له پلوه یودي، حضرت ابو عبیده (رضي الله عنه) په عمر کې تر نورو دواړو مشرو عتبه ته، حضرت حمزه شیبه ته او حضرت علي ولید ته بلنه ورکړه، حضرت حمزه او حضرت علي په لومړیو ګذارونو ولید او شیبه ووژل بیا را وګرځیدل عتبه یې هم مړ کړ او حضرت ابو عبیده چې ټپي شوی و له ځان سره یې دمیدان څخه پورته کړ او بیرون یې ویوړ، هغه دټپونو تاب رانه وړو او شیهد شو

په "طبقات الکبری" کې ابن سعد له قتاده څخه روایت کړی: چې په بدر کې حضرت علي (رضي الله عنه) سره درسول الله (ﷺ) بیرغ و، حافظ ابن عساکر ویلي: رسول الله (ﷺ) په بدر کې خپله توره "ذولفقار" حضرت علی (رضي الله عنه) ورکړه او له جنګ وروسته یې دهمیش لپاره هغه ته وبښله.

**احد غزوه:**

دهجرت په دریم کال شوال کې داحد غزوه پېښه شوه، الله (جل جلاله) مسلمانانو سره کومک وکړ او خپله دنصرت وعده یې پوره

کړه، دمشرکانو پښې ولړزیدې، دهغوئ میرمنو په تیښته کې خپل خیر ګاڼه.رسول الله (ﷺ) دغشو ویشتونکو مشر عبدالله بن جبیر(رضي الله عنه) مقرر کړ، هغه سره پنځوس غشي ویشتونکي وو، هغوئ ته یې ښوونه کړې وه چې تاسې په هیڅ حال کې به دخپل ځایه نه ښکته کیږئ، له دې لوري راتلونکي دښمنان په غشو ولئ !څو هغوئ له شاه نه په مونږ حمله ونه کړي، که مونږ بری وموموو ! یا میدان دښمنانو ته په لاس ورغلو په دواړو حالتونو کې به تاسي له خپل ځایه نه ښورئ، اګر که دا ووینئ چې دمرغانو سیل په لښکر یرغل کړي.

خو کله چې مشرکان دشکست سره مخ شول او په منډو شول غشو ویشتونکو خپل ځای پریښود او دکافرانو په لښکر ورمات شول، ولې د هغوئ کلک یقین راغی، چې بری دوئ ترلاسه کوي او لاړل، راځئ چې غنیمت اومالونه‌غونډ کړو، حضرت عبد الله بن جبیر (رضي الله عنه) چې دهغوئ امیر وه هغوئ ته درسول الله (ﷺ) حکم ورپه زړه کړ، هغوئ ویلې اوس مشرکان په منډو دي دهغوئ دبیرته راتلو خو سوال نشته ،لیکن دښمن په کمین کې وو، څنګه چې یې سنګر خالي ولید، ناڅاپه یې حمله وکړه، او ترشاه راتاو شول په مسلمانانو یې بریدونه پیل کړل اوپه لوړ غږ یې اعلان وکړ: "الا ان محمدا قد قتل "یعنې محمد (ﷺ) شهید شو، په دې سره دمسلمانانو پښې ولړزیدې دښمن راوګرځید او حمله یې شروع کړه،هغوئ ته دا موقع په لاس ورغله چې دمسلمانانو سوبه په شکست بدله کړي، تردې چې په دې وخت کې دښمنانو ته تر رسول الله (ﷺ) پورې هم درسیدو موقع په لاس ورغله، په رسول الله (ﷺ) یوه تیګه ولګیده، دهغې په وجه درسول الله (ﷺ) لاندې غاښونه مبارک شهیدان شول او په سر مبارک زخمي شو، ترې وینې روانې شوې، شونډې یې زخمي شوې،مسلمانانو ته نه معلومیده چې رسول الله (ﷺ) چیرې دی، حضرت علي (رضي الله عنه) رسول الله ترلاس ونیو او حضرت طلحه بن عبید الله پورته کړ، رسول الله(ﷺ) پخپلو پښو ودریده حضرت مالک بن سنان (رضي الله عنه) درسول الله دمخ مبارک نه دوینو داغونه صاف کړل.

امام بخاري (رحمه الله) دسهل بن سعد (رضي الله عنه) نه روایت کړی هغه نه درسول الله (ﷺ) دزخمیتوب دکیفیت باره کې پوښتنه‌و شوه چې چا درسول الله (ﷺ) زخمونه وینځل، چا اوبه وراچولې او رسول الله (ﷺ) ته کومه دوا ورکړای شوه؟ هغه وویل: ماته دا ټول یاد دي، فاطمه بنت رسول الله (ﷺ) درسول الله زخمونه وینځل، علی (رضي الله عنه) اوبه راوړې، کله چې فاطمې (رضي الله عنها) ولیدل چې په اوبو سره وینه دبندیدو په ځای نوره بهیږي، نودفرش نه لږ ټوټه یې غوڅه کړه هغه یې وسیزله او بیا درسول الله (ﷺ) دسر مبارک په زخمي ځای کینښوده چې ورسره وینه بنده شوه.

دحضرت علی (رضی الله عنه) زړورتیا او جنګې وړتیا:

دهجرت په ۵ کال شوال کې دخندق غزوه چې ورته احزاب غزوه هم وايي، پيښه شوه، دا غزوه له هغو غزاګانو څخه ده چې دهغو اغېز ې او اثرات تر ډېر لرې پورې او د اسلام دپراختيا لپاره معاون ثابت شوې دي، هم دا شان دا جنګ فيصله کونکی جنګ و. مسلمانان دهغو ازماينښتونو سره مخ شول چې وړاندې له هغو سره نه وو مخ شوي، (البدايه والنهايه ۷ټوک ۲۲۴مخ)

دهغه ښکاره او څرګند انځور په دې مبارکو اياتونو کې اخستل شوی دی:

اذ جآءُو کم مِّن فو قکُم وَ من اَسفَلِ منکُم وَ اذ زَاغَت الاَ بصَارُ وَبَلَغَت القُلُو بُ الحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاَللهِ الظُنُونَا. هُنَالِکَ ابتُلِیَ المُؤ مِنِینَ وزُلزِلوا زلزالاً شدیداً. احزاب۱۰:۳۳-۱۱)

کله چې هغوئ په تاسو باندې له پورته او ښکته لوري راغلل او کله چې سترګې ورغلې، او زړونه (له ډاره) تر غاړو پورې راغلل او تاسې دخدای (جل جلاله) په اړه ډول ډول ګمانونه کول پيل کړل هلته مومنان سخت وازمايل شول او ډېر سخت ولړزول شول

په جنګې چارو کې حضرت علي (رضی الله عنه) ته الله (جل جلاله) ډېر کمالات ښنلي وو، ددې لومړی شاندار اظهار په دې جنګ کې وشو، دحضرت سلمان (رضی الله عنه) په مشوره چې کوم خندق کندل شوی و، هغه دمدينې منورې دشمال او مغرب په لور وه ولې له دې خوا مدينې ته دننوتو لار خلاصه وه، دا خندق دمسلمانانو او قريشو ترمنځ مانع و، ددښمن دلس زره لښکر سره راغلی وو، دهغوئ په اسونو سپاره جنګيالي په ډېره تيزۍ دمدينې منورې په لور تلل، کله چې خندق ته ورسيدل نو ټکان يې وخوړ، او ويلې: دا دجنګ نوی تدبير دی، عرب ددې سره نه و اشنا، بيا دخندق يوې تنګې برخې ته ورسيدل، هلته يې خپل اسونه ښکته کړل، او له کندې پورته شول او مدينې ته ننوتل، په هغو جنګياليو کې يو تن "عمروبن عبدود" هم و، هغه ځان دزرو جنګياليو سره برابر ګاڼه، هغه مخکې راغی ودريد وي ويل: من يبارز؟ څوک شته چې ځما سره دمقابلې همت وکړي؟

دهغه مقابلې ته حضرت علي (رضی الله عنه) ور ووت، او وې فرمايل: اې عمره تا دالله سره دا ژمنه کړې وه، که هر قريشي سړي ماته دوه خبرې وکړې نو يوه به ضرور منمه، هغه ويلې: بيشکه!! حضرت علی رضی الله عنه وويل: زه تا ته د

الله (جل جلاله) او دهغه درسول او اسلام بلنه درکوم

عمرو وويل: زه دېته ضرورت نه لرم

حضرت علی (رضی الله عنه) وفرمايل: بيا تا ته دمقابلې بلنه درکوم،

عمرو وويل ولې؟ ځما ځويه (ابن اخي - وراره) زه تا قتلول نه غواړم!

حضرت علی( رضي الله عنه ) وفرمایل:

لیکن په الله سو ګند زه تا قتلوم

ددې په اوریدو هغه کې جوش راغی، له خپل اس نه یې ټوپ کړل او دحضرت علي په مخکې توره په لاس ودرید دداړو ترمنځ مقابله پیل شوه، په یوبل یې ګذارونه کول حضرت علی( رضي الله عنه ) وربانـدې دومره تیز او پریکنده حمله وکړه چې هغه یې بل ګذار ته پرېښود او په ځمکه راپریوت مړشو

په بل روایت کې واقعه داسي بیان شوي چې "عمرو " نارې کړل: هغه څوک دی چې ځما مخې ته راشي، اومسلمانانو ته یې دحقارت په لهجه وویل: چیرته دی هغه جنت چې په اړه یې تاسي عقیده لرئ چې څوک شهید شي ، هغه ته ننوزي، ولې څوک ځما مخې ته نه راباسئ؟ حضرت علي ( رضي الله عنه ) دوه ځله پورته شو او له رسول الله( ﷺ ) نه یې اجازت وغوښته خو رسول الله( ﷺ ) ورته ویلي: کینه، "عمرو " دریم وار غږوکړ، او په ډېره غوسه آمیزه لهجه یې مسلمانانو ته بلنه ورکړه:حضرت علي( رضي الله عنه ) پورته شو وي ویل: یار سول الله زه؛ رسول الله( ﷺ ) وویل عمرو دی، پیژني یې؟ حضرت علی ( رضي الله عنه ) وویل: هو ! عمرو ! رسول الله( ﷺ )اجازه ورکړه، علی ( رضي الله عنه ) هغه ته ورمخکې شو کله چې خپل نوم واخست، هغه وویل: اې وراره ! ستا په ترونو کې له تا مشران شته ماته خوند نه راکوي چې ستا وینه توی کړم، حضرت علي رضي الله عنه وویل: په الله جل جلاله سو ګند زه خو ستا وینه تویول غواړم، بیا مقابله شروع شوه حضرت علی( رضي الله عنه ) هغه قتل کړ ( البدایه والنهایه ۴ټوک ۱۰۷مخ )

بیا جنګ پای ته ورسید ولې قریظه ( چې دقریشو حلیفان وو ) دقریشو سره یې اختلاف راغی، هم دا راز نورو ډلو ( احزابو ) چې په کوم ځای اړولي وو ، په یخو شپو کې وربانديې تیزه سېلۍ را والوته له دهغوئ پناه ځایونه او خیمې پریوتي، له دې وروسته په قریشو کې دمقابلې همت پاته نشو، رسول الله( ﷺ ) وفرمایل: دسږکال وروسته به قریش په تاسو بیا حمله ونکړای شي، نور به تاسي په هغوئ حملې کوئ البدایه النهایه ۴ټوک ۱۱۵مخ )

.......... نوربیا

# قوم گرایی یا شرک پنهان

پوهندوی عبدالرؤوف مخلص

قـوم گرایـی یـا شـر ک پنهـان، آفتـی اسـت کـه انسانیت، بر اثر اغوای شیطان های انسی و جنی به مصیبت آن گرفتار گردیده است.

قوم گرایی، دعوتی است شوم که پیکرۀ جامعه را تجزیـه نمـوده، افتخـارات دروغـین را بـزرگ و برجسته ساخته و هویت جامعه را به سراشیب نیستی رو به رو می گرداند.

قوم گرایی اساساً اندیشه ی است که در چهرۀ معاصر خود در اروپـای غربـی زاده شـد و هـدف آن یافتن دریچه های گریز از تفکر دینی بود. نخست قوم گرایان در کشور آلمان زبان واحد را محور تجمع کتلۀ بشری دانستند. قوم گرایان در فرانسه، زندگی مشترک در یک محیط را محوری برای تجمع قومی پنداشتند، اشتراک در تاریخ و زبان مشترک،

گـرایش دیگـری در ایـن زمینـه اسـت کـه قـوم گرایان عرب بدان روی آوردند و ابسته گی تاریخی به یک قلمرو و جغرافیایی از دیگر خاستگاه های تفکر قومی است که نزد قوم گرایان برجسته گردید. و در یک کلام قوم گرایی به هر اندیشه یی که اتکا کرده است، اندیشه یی بوده است در جهت گسست انسان ها و پارچه نمودن امت ها و ایجاد دیوار های حایل میـان مجموعـه هـای بشـری و کاشـتن تخـم تفرقـه و تضاد و دشمنی میان آنان.

اسلام که آمد با این تفکر به سختی پیکار کرد و آن را بـه جایگـاه طبیـع آن بر گردانیـد کـه همانا ابزار تعارف و شناسایی میان مجموعه های انسانها است و بس.

»قومیت« در فرهنگ جاهلی نه به این عنوان

بلکه تحت پرچم «عصبیت» شناخته می شد. عصبیت افراد یک قبیله واحد را به هم پیوند می داد و آنها را در برابر قبایل دیگر به دشمنی و رویارویی بر می انگیخت.

البته درون مایه های این تفکر در نهاد انسان را می توان به انگیزه های آتی وابسته دید:

۱ - انانیت و خودمحوری که از فرد آغاز شده به خانواده گسترش یافته و نهایتاً به دائرة قبیله و قوم می انجامد.

۲ - عاطفة رحم موجود در فطرت انسان که به طور طبیعی به اصول، فروع و اقربای درجه یک ویا نزدیکان هم ریشة خود تمایل دارد.

۳ - جستجوی یک چتر حمایتی برای تأمین منافع و فراهم آوری آسایش و امنیت خود در رویارویی با دشمنان فرضی یا کسانی که به حریم منافع انسانهای دیگر چشم می دوزند.

۴ - جستجوی یک محور تعاون و همیاری برای تأمین منافع مشترک اجتماعی، اقتصادی، سیاسی و غیره.

این اندیشه در قرن بیستم به عنوان یک جریان مسلط بر روابط دولتها و ملتها حاکم گردید. و می توان بروز جنگ جهانی اول و دوم را یکی از فاجعه بارترین آفات آن دانست که به کشتار ده ها ملیون انسان و نابودی و اتلاف منابع حیاتی بشر انجامید.

اسلام به وحدت انسانی و مساوات میان فرزندان آدم و احترام و تکریم انسان از حیثی که «انسان» است فرا می خواند، صرف نظر از این که این «انسان» به کدام تبار، کدام رنگ، کدام جغرافیا و کدام ملیت مرتبط است.

اسلام بر اساس «حق» و «ولاء «یعنی وابستگی ایمانی به «الله» و «رسول» او (ص) رابطه جدیدی را ایجاد می کند که نام «اخوت» و برادری میان همه انسانها صرف نظر قوم، نژاد، قبیله، زبان و جغرافیای آن هااست: «إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ»() (بی تردید، مسلمان ها برادر همدیگر اند) و «المسلم اخ المسلم»() (مسلمان برادر مسلمان است .(

قرآن کریم به ما دستور می دهد که هر گونه رابطه دیگری را که در تعارض با این مفهوم والا قرار می گیرد، به دور اندازیم. الله متعال می فرماید: «يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا آبَاءَكُمْ وَإِخْوَانَكُمْ أَوْلِيَاءَ إِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى الْإِيمَانِ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ» ( ) (ای اهل ایمان! اگر پدران تان و برادران تان کفر را بر ایمان ترجیح دهند، آنان را دوستان و سرپرستان خود مگیرید؛ و کسانی از شما که آنان را دوست و سرپرست خود گیرند، هم اینانند که ستمکارند.(

همچنان الله متعال می فرماید: «لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ»( ) (گروهی را که به خدا و روز قیامت ایمان دارند، نمی یابی که با کسانی که با

خدا و پیامبرش دشمنی و مخالفت دارند، دوستی برقرار کنند، گرچه پدرانشان یا فرزاندانشان یا برادرانشان یا خویشانشان باشند(.

اسلام تنها رابطه و پیوندی را که به رسمیت می شناسد، رابطه «ایمان» و «اخوت» اسلامی است و نه چیزی دیگر، در حالی که قوم گرایان؛ یعنی آنان که اندیشهٔ قوم گرایی را به عنوای یک ایدیولوژی ترویج می کنند رابطهٔ قومی را بر هر رابطهٔ دیگری مقدم می گردانند و این در نهایت همان اندیشهٔ شرک جاهلی است.

از نظر قوم گرایان، جایگاه دین به عنوان یک امر مقدس بالای رف خانه است و هر جا نعره قومی بلند شد، خبری از «ولاء» و رابطه دینی نیست و همهٔ مقدسات به خاطر دعوت قومی زیر پا می شود.

الله متعال می فرماید» :وَإِنَّ هَذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً» ( ) (و این امّت شما امّت واحدی است) در حالی که قوم گرایان این امت واحده را به هزار و یک امت متعارض و متضاد با هم تقسیم کرده، آمال ها و آرمانهای بنای یک کشور و ملت متحد را به نابودی می کشانند.

رسول گرامی اسلام که الگوی هر مسلمان مُتعبِّد و باورمند و متعهد هستند، برای زدودن افکار و آثار اندیشه » قومیت» در نخستین مراحل تاسیس دولت نبوی در مدینه منوره میان مهاجرین و انصار به عنوان دو کتله ایمانی عقد «اخوت» منعقد ساخته و با این گام بزرگ، تمام افکار و رسوبات جاهلیت قومی را از محیط فکری و اجتماعی مسلمین بیرون ریختند. ایشان بر اساس رابطه «اسلام» و «ایمان» بین بلال بن رباح رض و خالد خثعمی رض ،بین زید رض و حمزه بن عبدالمطلب رض ، بین خارجه بن زید رض و ابوبکر صدیق رض ، بین عمار بن یاسر رض و حذیفه بن یمان. رض. عقد «اخوت» منعقد ساختند و پایه های اعمار یک جامعه توحیدی را به استواری، بنیان گذاشتند.

جامعه نخستین اسلام بر اساس این رابطه جدید متولد گردید؛ نه بر اساس خون و خاک و رنگ و زبان و تبار .جامعه ای که در آن صهیب رومی رض ، سلمان فارسی رض و بلال حبشی رض در کنار والاترین سید قریشی -بلکه بالاتر از او- زندگی می کنند. سلمان فارسی رض خود را «فرزند اسلام» می خواند و نبی کریم صلی الله علیه و سلم او را به خانواده خویش منتسب می گردانند و می فرمایند: «سَلْمَانُ مِنَّا أَهْلَ الْبَيْتِ) ( ) « سلمان از اهل بیت ما است(

جامعه ای که در آن غلام سیاه پوست حبشی ای که چون زیدبن حارثه رض ، فرزند خوانده پیامبر اکرم صلی الله علیه و سلم می شود، جامعه ای که سالم بردهٔ ابی حذیفه رض را به عنوان پیشوای مسلمین می شناسد، چنان که عمر فاروق رضی الله عنه می گوید: «لو کان سالم حیاًلویته»( )(اگر سالم زنده می بود، او را بعد از خود کاندید خلافت مسلمین می گردانیدم.«

جامعه ای که هر گاه کسی می خواست نعره های قومیت را در آن بلند نماید و انصاری بگوید: آهای انصار کجایید! رسول گرامی اسلام صلی الله علیه و سلم بر می خیزند و فریاد می زنند: «مَا بَالُ دَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ؟... دَعُوهَا فَإِنَّهَا مُنْتِنَةٌ»( (این چه دعوتی است؟ شما را چه شده است که نعره های جاهلیت را بر افراشته اید؛ این صداها را خاموش کنید؛ این نعره ها را خفه سازید؛ چرا که از این نداها بوی گند عفونت جاهلیت به مشام می رسد.(

آخرین سفارش رسول کریم صلی الله علیه و سلم در خطبه حجة الوداع این است: «يَا أَيُّهَا النَّاسُ أَلَا إِنَّ رَبَّكُمْ وَاحِدٌ وَإِنَّ أَبَاكُمْ وَاحِدٌ أَلَا لَا فَضْلَ لِعَرَبِيٍّ عَلَى أَعْجَمِيٍّ وَلَا لِعَجَمِيٍّ عَلَى عَرَبِيٍّ وَلَا لِأَحْمَرَ عَلَى أَسْوَدَ وَلَا أَسْوَدَ عَلَى أَحْمَرَ إِلَّا بِالتَّقْوَى أَبَلَّغْتُ قَالُوا بَلَّغَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ... قَالَ لِيُبَلِّغْ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ»( ) (ای مردم! آگاه شوید که پروردگار شما یکی است، پدرتان یکی است، آگاه شوید که هیچ عربی بر عجمی و نه هیچ سرخ پوستی بر سیاه پوستی و نه هیچ سیاه پوستی بر سرخ پوستی برتری ندارد؛ مگر بر اساس تقوا. آیا احکام الهی را به شما رساندم؟ همه گفتند: که بلی... فرمودند: باید [دعوتم را] فرد حاضر برای غایب برساند(

و در نهایت نتیجه می گیریم که ادعای اسلام با ادعای قومیت هرگز با هم سازگار بوده نمی تواند زیرا مصدر و اساس اسلام دستور شارع حکیم الله عزوجل است در حالی که مصدر و سرچشمهٔ نداهای عصبیت قومی، افکار جاهلیت می باشد. همچنان که اندیشهٔ قوم گرایی، این تفکر را بر اخوت دینی مقدم می گرداند، چنین تفکری، اندیشهٔ «وحدت اسلامی «را هدف قرار داده و منافی با اصول عقیده و اصول دین است. از این جهت علما چنین اندیشه ای را «شرک محض» تلقی نموده و در صورتی که بر اسلام و اصول آن مقدم گردانیده شود، کفر محض دانسته اند.

در شرایط حاضر که جامعه ما پس از تجربهٔ سال ها بحران و تنش هم اکنون سخت به وحدت اسلامی نیازمند است، با تأسف ملاحظه می کنیم که دعوت های قومی و نداهای تجزیه باری از این دست، همان نداهای جاهلی را دوباره نشخوار نموده و بر آنند تا ملت مسلمان را به عصر جاهلیت بر گردانند.

باید با هوش باشیم و برای حراست از عقیده و ایمان توحیدی خویش به نداهایی از این دست پاسخ رد بدهیم، بر سینه ابلیس مشت رد بکوبیم و نعره های ابلیسی را خفه گردانیم.

بیایید به حبل الله «وحدت» چنگ زنیم و میراث جاهلیت را برای همیشه به زباله دان تاریخ بسپاریم. والسلام.

# اسلامي خلافت



# د اسلامي خلافت د سقوط اسباب او د بیا احیاء لپاره یې د مسلمانانو مسؤولیت

(خارجی منابع)

له نن څخه نوي کاله وړاندې د ۱۹۲۴ زیږدیز د مارچ د میاشتې په ۳مه نیټه د مسلمانانو د اسلامي خلافت منار د غرب د مسلسلو د سیسو په نتیجه کې د اسلام دښمن ستر مجرم کمال اتاترک لخوا ونړول شو.

د خلافت له نړیدو وروسته د مسلمانانو ورکه ورځ پیل شوه مسلمانان لکه یتیمان ماشومان بې سرپرسته پاتې شول، فلسطین د یهودي اشغالګرانو لخوا اشغال شو، په افغانستان، چیچنیا، صومال، بوسنیا، عراق، سوریا او د نړۍ په نورو هیوادونو کې په لکاوو مسلمانان ووژل شول او دا لړۍ لا روانه ده.

عثماني اسلامي خلافت د خپل ۲۲۵ کلن عمر په اوږدو کې مسلمانانو ډیر څه لاس ته راوړي، چې پکې د اسلامي زمکې غزیدل، د صلیبیانو د مسلسلو تهاجمي تیریو په وړاندې کلک دریدل، بیلابیلو سیمو ته د اسلام د دعوت رسول، د اسلامي علمي فرهنګي خدمت په مخ بیول د نمونې په توګه یادولی شو.

په اسلامي شريعت دعثماني خلفاو کلک اعتصام، خلافت ته وفاداري، جهاد ته ژمنتيا، له ديني علماؤ سره تعلق او دهغوی احترام، دحرمينو شريفينو او مسجد اقصی خدمت هغه څه وو چې دخلافت پرضد يې ډيرې دسيسې تر ډير وخته له ناکامی سره مخ کړې وې.

خو په ځينې بې علمه جاهلانو او چاپلوسو خائنانو دخلفاؤ اعتماد او باور نااهلانو ته دکار سپارل، او په خپله له کاري ساحې څنګ کيدلو ديته زمينه مساعده کړه چې دا مغرضان له خپل واکه په استفادې ګوندونه ايجاد او دخلافت په له منځه وړلو کې کار ترې واخلي.

همدا اوس دنړی په بيلابيلو هيوادونو کې دمسلمانانو نسل کشي روانه ده، بې وزله او بې دفاع مسلمانان دبودايې نمرودانو لخوا په برما کې ژوندي سوځول کيږي، په منځنی افريقا کې دسخت دريځو صليبيانو لخوا مسلمانان په ډله ييز ډول په شهادت رسيږي، په چړو حلاليږي، په لکونو دخپلو سيمو پريښودلو ته اړ کړل شول، خو دبشري حقوقو سازمانونه کاڼه ړانده دي.

دنړی په سطحه يوازې دافغانستان اسلامي امارت او جهادي تحريکونه وو چې دا مظالم يې وغندل او دمظلومو مسلمانانو په حق کې يې غږ پورته کړ.

له همدې امله دکفارو مخکښه امريکا غواړي دمسلمانانو حقيقي مدافعان مجاهدين او هغه خلک چې دمسلمانانو دبرم دبيرته لاسته راوړلو لپاره کار کوي په لومړي قدم کې له منځه يوسي، او دا ښکاره خبر ده بش چې کله دصليبي جګړې اعلان وکړ نو پدې يې ټينګار وکړ چې زموږ لومړی هدف هغه کسان دي چې داسلامي حکومت جوړولو هوډ لري او داسلامي خلافت داعادې لپاره کار کوي.

څرنګه چې اوس امريکا په افغانستان کې له بشپړې ماتې سره مخامخ کيدونکې ده مسلمانان او په ځانګړې توګه افغانان مکلف دي چې داسلامي امارت کلکه ننګه او ملاتړ وکړي، کيدای شي همدا دافغانانو په لاس داسلامي حکومت اينښودل شوی نيالګی دمسلمانانو دعزت او قوت داحياء لپاره محکمه ريښه ثابته شي.

ان شاء الله وما ذلک على الله بعزيز

# دجهاد فقهي مسائل

مفتي ابومحمد (حقاني)

## جهادکې دامير څخه استيذان (اجازه غوښتل)!

اوومه برخه

جهـادچې داسـلامي امـت دسياسـت عامـه لـه شعايرو څخه دی ، او دامامت کبری له دندو نه شميرل کيږي ، نودې ته په کتو هغه مصالح اومفاسد چې دجهاد د احياء او تر ک په پايله کې مرتب کيږي اوعام مسلمانان ورسره اړه لري ،په واکمنو او ولاة الامر باندې واجبيږي ،چې دجهاد ي چارو اهتمام وکړي او وخت ور ته وټاکي ، همداسې دامت په وګړو لازمه ده، چې خپلو واکمنو ته په اړونده مسايلو کې رجوع وکړي اوپر خلاف يې بغاوت ونکړي ،امام القرافي په (الإحکام في تمييز الفتاوی من الأحکام / ۲۴) کې فرمايي ، چې امام هغه څوک دی، چې دخلکوسياست عامه ،دمصالحو دمعاقدو غښتلتيا ،دمفاسدو دفع ،دجناياتو قلع اوقمع، او له ريښو ايستل ،دياغيانو وژنه، او په سيمو کې دخلکو ميشت

کول......ور ته سپارل شوی وي ،په( المغني ۱۶۶/۹) کې (ابن قدامه) رح فرمايي : چې دجهاد چارې امام او دده اجتهاد ته سپارل شوي او رعيت باندې يې اطاعت اړين دی .

فقهاء پدې سره ټول اتفاق لري، چې جهاد ته دامام څخه داجازې غوښتلو مشروعيت شته، خو پدې کې سره اختلاف نظر لري ،چې دمشر يا امام المسلمين له اجازې نه په غير جهادي مورچلونو ته تلل روادي ، که نا روا ! ، چې دې باب کې دوه حالتونه اودرې اقوال دمعتمدو کتابونو ليکلې چې دڅه دلايلو اوراجح قول سره به يې وليکو .

دفقهاوو له تصريحاتو څخه ښکاري، چې دجهاد دوه حالته دي ،يو حالت يې تعرضي يا طلب العدو او دوهم حالت يې دفاعي دی .

**لومړی تعرضي حالت :** که چیر ته مجاهدین له خپل اسلامي هیواد نه بهر کافرو پسې دجهاد لپاره تلل ،نو دې حالت کې چې تعرضي بڼه لري مجاهدین بایدچې له خپل امیر اومشر تابه څخه دخروج اجازه وغواړي ،او نږدې ټول فقهاوو پدې اتفاق کړی ،چې دې صورت کې له امیر يا دده له ځای ناستې قایم مقام څخه استیذان غوښتل مشروعیت لري ،چې همدا تشریح په پدې لاندینیومذکورو کتابونو کې راغلې ده :((المحرر في الفقه (۲/ ۱۷۰) وشرح السیر الکبیر (۱/ ۱۲۳) والأم (۴/ ۲۴۲) په (المغني) کې داسې لیکي چې : (ولا یخرجون إلا بإذن الأمیر..)( المغني (۱۳/ ۳۳)همدا رنګه په (المقدمات لابن رشد) کې

وایي چې :(۰. ولا یخرجوا إلا بإذنه..)( المقدمات الممهدات لابن رشد (۱/ ۳۴۶)).

تراوسه خو مو دومره واضح کړه، چې دامام یا امیر له اجازې نه په غیر په جهاد الطلب کې باید مجاهد جهاد ته لاړ نشي ،او اجازه اخستل یې مشروعیت لري ،اوس به یې دا ارخ هم واضح کړو، چې که بیا هم له اجازې نه په غیر لاړشي ،شریعت کې پرې څه حکم مرتب کیږي ؟

دشریعت له لیدلوري دامسئله اختلافي ده ،او پدې کې ځینو علمي منابعو دوه قوله او ځینو نورو درې قوله رانقل کړي دي چې تفصیل یې په لاندې ډول دی :

(۱)**قول** دادی چې دامیر له اجازې نه پر ته جهاد ته تلل حرام دي اوهیڅ جواز نلري ،ځکه چې دامام اذن په خروج کې واجب دی ،چې همدا قول داحنافو رح ،مالکیانو رح اوحنابلوورح دی ،خو په دومره زیادت سره چې احناف وایي چې که دامجاهد منعه او ځواک ونلري او یا ور ته دجهاد امیر دوتلو اجازه نه وي کړي ،نو خروج ور ته بې اجازې حرام دی ، چې همدا تقریبا متفق قول په دې لاندینو کتابونو کې رانقل شوی دی (مواهب الجلیل (۴/ ۵۴۰) والمقدمات الممهدات (۱/ ۳۴۶)).المغني لابن قدامة (۱۳/ ۳۳) و کشاف القناع (۲/ ۳۹۷) والفروع (۶/ ۱۹۹)).شرح السیر الکبیر (۱/ ۱۲۳) والفتاوی الهندیة (۱/ ۱۹۲)).

دې فوق الذکر مذاهبو استدلال کړی، چې دجهاد امر دجهاد امیر ته مفوض او موکول دی ،اولکه په (المغني او کشاف القناع )کې چې لیکي ،همدا امیر ددښمن په کثرت ، قلت او ددوئ په پوځي طاقت یا ضعف باندې پوهیږي ،او همداامیر پدې چارو ښه معلومات لري، نو همدا ښه احوطه ده ،چې دده رایې ته ترجیح ور کړل شي او دخروج اجازه ترې واخستل شي .

## هغه نصوص چې ددې درې ګونو مذاهبو دنظر توثیق کوي په لاندې ډول دي :

الله تعالی فرمایي :{يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا (النساء: ۵۹) پدې کریمه آیت کې ددې مذاهبو داستدلال وجه داسې ده ،چې دې کې دالله تعالی او دده درسول صلی الله علیه وسلم داطاعت څخه وروسته د(اولوالامر) یادحاکمانو

داطاعت حکم شوی او داد وجوب حکم لري، نوښکاري ،چې جهاد ته تلل به دمشر تابه په اجازه وي ،ددې وجه نه (حافظ ابن تیمیه رح) په (السیاسة الشرعیة ص: ١٢) کې لیکلي : چې دا آیت د رعیت په مورد کې نازل شوی، عام ددې نه چې هغه لښکر وي او که عام وي ددې نه ، نوپه دوئ باندې لازم شوي ،چې دوئ دامام او مشر په حکم ،قسم او مغازیو کې ددوئ فرمانبرداري وکړي ،خو که دوئ واکمنو ورته په معاصیو حکم کاوه، بیا به یې پیروي نه کوي .

همداسې په سورت النور : ٦٢آیت کې هم راغلي چې :مومنان به له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه استیذان غواړي اوپه (تفسیر القرطبي ١٢/٣٢٠) کې له امام څخه اجازه غوښتل واجب ګرځول شوي ده ،په ټولو هغو امورو کې چې امام ته دکوم مصلحت په بنیاد دخلکو دټولولو په هکله اړتیا وي ،لکه په دین کې دکوم سنت داقامت ،ددښمن ترهیب او ډارول او جګړو وغیره کې ، داددې تاکید کوي چې دآیت په سیاق کې راغلي، چې امام څخه داجازې نه غوښتل، دالله تعالی دعذاب او غضب سبب کیږي ،لکه د(النور سورت) پدې لاندیني آیت کې چې راغلي :{قَدۡ يَعۡلَمُ اللَّـهُ الَّـذِينَ يَتَسَـلَّلُونَ مِـنكُمۡ لِـوَاذاً فَلۡيَحۡـذَرِ الَّـذِينَ يُخَالِفُونَ عَنۡ أَمۡرِهِۦٓ أَن تُصِيبَهُمۡ فِتۡنَةٌ أَوۡ يُصِيبَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ (النور : ٦٣).

احادیثو کې هم دمسلمانانودامام او امیرپه اطاعت او استیذان تاکید شوی او دجهاد غوندې اهم کار چې له نورومصالحوڅخه یې اهمیت او ارزښت ډیر دی ،دنبوي لارښوونو په رڼا کې داسې څه مومو، چې دامام اطاعت ته دلومړیتوب مرتبه ورکوي او له شارع څخه وروسته دده پیروي لازموي ، لکه چې دحضرت ابوهریره رض څخه روایت دی :چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : "من أطاعني فقد أطاع الله ومن عصاني فقد عصى الله، ومن يطع الأمير فقد أطاعني ومن يعص الأمير فقد عصاني، وإنما الإمام جنة يقاتل من ورائه ويتقى به، فإن أمر بتقوى الله وعدل فإن له بذلك أجراً، وإن قال بغيره فإن عليه منه" ( رواه البخاري بطوله في كتاب الجهاد والسير برقم (٢٩٥٧)، وروى مسلم أوله في كتاب الإمارة برقم (١٨٣٥) وروى آخره في كتاب الإمارة برقم (١٥٤١)).

دې پورتني حدیث کې دموضوع په باب وجه الاستدلال داسې ده، چې نوموړی حدیث د امام څخه په استیذان غوښتلو په دوو وجوهاتو دلالت کوي ،لومړی داچې حدیث کې صراحت او نص دی ،دامام یا امیر په اطاعت باندې ،او جهاد خو هغه وجیبه ده، چې باید پکې دولاة الامر اطاعت وشي ،ځکه دا دمصالحو عامه څخه دی ،دویم داچې شارع دجهاد دچارو مناط او دارومدار دامام سره وتاړه ،نظرپه هغو مزایاووچې یوازې همده پورې خاص دي او نورو پورې اړه نلري ،چې ګویادامام شباهت دپردې یا تستر سره شوی ،ځکه دابه دبیضة الاسلام یا داسلامي ټولنې دفاع کوي ،دابه دخلکونه ویره لري او خلک به دده له دهشته ویره لري (شرح صحیح مسلم للنووي ١٢/٢٣٠).

حافظ ابن حجر په(فتح الباري) کې فرمايي :چې دا

امام بـه دښمن دمسلمانانوله تکلیف رسولوڅخه منع کوي ،اوهم به مسلمانان خپلو کې یو بل ته له ضرر رسولو څخه منع کوي( فتح الباري ۱۱۶/۶

(۲) **قول** دادی، چې جهادته دامیر له اجازې نه پـه غیـر تلـل حـرام نـه ،بلکـې مکـروه دي ،چـې دا دشوافعورح قول دی اوداحنافوقول هغه وخت ورسره مل دی، چې دې مجاهد کې طاقت او ځواک ددښمن دمقـابلې موجـود وي ، امـام شـافعي رح پـه( الام )کې لیکي "وإن غزت طائفة بغير أمر الإمام كرهته لما في إذن الإمـام مـن معرفتـه بغـزوهم ومعـرفتهم ويأتيـه الخبر عنهم فيعينهم حيث يخاف هلاكهم فيقتلون ضيعة . قال الشافعي رحمه الله: ولا أعلم ذلك يحرم عليهم". (الأم ۸ / ۳۷۹).

ددې فـوق الـذکر قول تفصـيل پـه لانـديني کتابونو کې پداسې عبارت ليکل شوی چې ،دمسئلې مزيد وضاحت هم له ځانه سره لري هغه کتابونه او حـوالې پـدې توګـه دي (الحـاوي الکبيـر (۲۰۶/۱۴) ومغنـي المحتـاج (۲۴/۶) وروضـة الطـالبين (۲۳۸/۱۰).شـرح السـير الکبيـر (۱۲۳/۱) والفتـاوی الهنديـة (۱۹۲/۱).

شوافعو رح هم په هغې دلايلو استدلال کړی ،پـه کومو چې دې نورو هغو مـذاهبو کړی چې هغـوئ يـې دجهـاد پـر لـور خـروج لـه اذن پر تـه حـرام بولي، خـو شوافع بيا داستدلال سبک بدلوي او دهمدې دلايلو پـه رڼا کې يې حرام نه بلکې مکروه بولي او هم وايې ،چې له اجازې پر ته جهاد ته تلل حرام ځکه ندي ،چې که احيانا دامجاهدين بې اجازې جهاد ته ووځي ،نو لويـه هغـه مسـئله چـې بـه پيښـه شـي ،هغـه دده تغريـر بالنفس(حمل النفس على الغرور) دی ،او دا پـه جهاد کې جايز دی ،نه ناروا! چې همدا استدلال اود(تغرير بـالنفس) مسـئله پـه دې لانـدينو کتـابونو کې تشـريح شـوي (الحـاوي الکبيـر (۲۰۶/۱۴) ومغنـي المحتـاج (۲۴/۶) وروضـة الطـالبين (۲۳۸/۱۰) وشـرح السـير الکبير (۱۲۳/۱) والفتاوى الهندية (۱۹۲/۱).

(۳) **قول** :په (المحلى ۲۱۷/۷)کې د ابن حزم رح او(الإنصاف ۱۵۲/۴) يوقول دامام احمد رح نقل دی، چې دوئ وايي، چې دامام له اجازې پر ته جهاد ته تلـل روا دي او بـاک نلـري ،دليـل يـې دادی چـې الله تعالى دې آيت کريمه کې فرمايي :

{فَقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَكُفَّ بَأْسَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَاللَّهُ أَشَدُّ بَأْسًا وَأَشَدُّ تَنْكِيلًا (۸۴)} (النساء: ۸۴). علامه ابن حزم پدې آيت باندې داسې استدلال کوي، چې دجهاد ددې آيت کريمه خطاب عام او حکم يې ټولو مسلمانانو تـه شامل دی ،نو که څه هم څوک ورسره نه وي، بيا هم هر څوک پدې حکم مامور دي "( المحلى ۴۲۱/۴).

خوددې استدلال ځواب داسې کيدای شي چې دې آيت کې خوله امام څخه په عدم استيذان کوم دليل نه تر ستر ګو کيږي ،ځکه دا خطاب خو پيغمبر عليه السلام تـه دی او هغه امام او خلک يې پيروان او تابع دي .

ابن حزم بل دليل کې دا آيتونه وړاندې کوي ،چې {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا خُذُوا حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوا ثُبَاتٍ أَوِ انْفِرُوا جَمِيعاً (٧١)} (النساء: ٧١).

وقوله تعالى: {انْفِرُوا خِفَافاً وَثِقَالاً وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ (التوبة: ٤١)}.

علامه ابن حزم ددې ايتونووجه داستدلال داسې بيان کړي ،چې الله تعالى پر ته ددې څخه چې جهاد ته تلل يې دامام په استيذان مقيد کړي ،پدې آيتونو کې يې په نفير عام مطلق حکم کړی، نودامام اجازه پکې نده شرط شوي ،خو دابن حزم ځواب داسې کيدای شي، چې پدې آيتونو کې حکم مطلق په نورو آيتونو سره مقيد دی ،هلته بيا دامام اجازه شرط شوي ده ،او استنفار ده ته موکول يا سپارل شوی، چې مطلق په مقيد باندې حمل کيږي لکه دې کريمه آيت کې {إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ}

## ترټولو راجح قول :

• لومړنی قول (په جهاد الطلب کې دخروج پر

وخت له امام څخه داجازې غوښتلو شرط) راجح دی، اوداڅو سببونو په دليل چې هغه دادي :

(١)همدا کار دنبی عليه السلام ظاهر الهدی ده ،يقينا رسول الله صلی الله عليه وسلم او څلورو خلفاوو دجهاد دولايت چارې پخپله سنبالولې، لکه دجهاد اعلان ،دلښکرو تلل ،دقوماندان ټاکل اونور داسې دجهاد انتظامي امور چې دمشر تابه پورې به يې اړه پيدا کوله.

(٢)همداسې په هغه عامه سياساتو کې چې دامت دعامه مصالحو تحقيق پکې موخه وي ،رجع يې امام ته کيږي ،همدا وجه وه، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به چې پدې باب کې داسې مسايلو کې تصرف کاوه، هغه به دامامت له ليدلورې و، نه درسالت او قضاء له جهته ،او کله چې موداجوته کړه ،چې دا ډول تصرف دامامت له خصايصو او ليد لورې څخه دی ،نه درسالت او قضاء له جهته ،نو رجوع به پکې امامانواو حکامو ته کيږي، نو پايله داشوه چې له اقدام څخه مخکې به استيذان او ترې اجازه اخستل لازم وي او ددې نه په غير به ګام نه اخستل کيږي .

امام القرافي په (الإحكام في تمييز الفتاوى من الأحكام ص:١٠٨) کې وايې چې هغه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم کوم کار او تصرف دامامت له ليد لورې کړی لکه ،دغنايمو ويش ،دمصالحو په رڼا کې دبيت المال تقسيم ،دحدودو اقامه کول ،دلښکرو تنظيمول ،دياغيانو وژل ،اقطاعات په کليو او معادنو ويشل اوداسې نور.....نوهيچاته جواز نلري، چې دوخت دامام يا امير له اجازې پرته داسې کوم اقدام وکړي ،ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم داسې تصرفات دامامت له ليد لورې او حيثيت څخه کول او داپه غير له اجازې يا استيذانه نه روا کيږي ، نوددې کريمه آيت په

دلیل شریعت مقرره شو، چې دې کې ښه جوت دی {وَاتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ (الأعراف: ۱۵۸)}.

(۳) : که چیر ته دجهاد چارې دامت دهر فرد په لاس کې شي، نو ډېرو مفاسدو دروازې به خلاصې او امت کې به اختلاف او نزاع رامنځته شي ،اودا هغه څه دي ،چې شریعت یې دفع او منع واجب کړي ده ،او قاعده داده چې کله کوم واجب دده څخه په غیر نه تما میږي، نو داهم بیا واجب ګرځي ((والقاعدة أن ما لا يتم الواجب إلا به فهو واجب))، په (مواهب الجلیل) کې (حطاب )له (شیخ احمد زروق رح) څخه نقل کړي، چې ده به خپلو ورونو ته په توصیو کې ویل چې :دمسلمانانو دمشر له اجازې نه په غیر جهاد ته پاملر ته او توجه دفتنو دپیدا کیدو او د کم برې لامل ګرځي ((التوجه للجهاد بغير إذن جماعة المسلمين وسلطانهم فإنه سُلَّم الفتنة وقلما اشتغل به أحد فأنجح "( (مواهب الجليل ۳/ ۳۵۰.........)

بل داچې پدې حالت دمسلمانانو امام دخپل امامت دحکم له مخې دښمن په حالاتو ښه پوهیږي او دهغو قوت او ضعف هم ور ته معلوم وي ،اوهم پدې پوهیږي ،چې کله دمحاربې وخت او کله ندی ،نو کومه فیصله چې پدې باب هغه وکړي ،هغې کې به دمجاهدینو خیر او بر کت وي، نو ددې اړتیاوو او ځانګړ تیاوو له مخې ویلای شو، چې جهاد ته تګ کې له امام څخه اجازه واجب او پر ته له اجازې ، تلل حرام عمل دی ،همداسې که دامام داجازې نه په غیر څوک جهاد ته لاړ شي ،نو ددې امکان نشي ر دیدای چې دمجاهدینو تر منځ به ضرور اضطرابات او ګډوډۍ پیدا کیږي او ددې پایلې به بیا ګټورې نه وي، ددې املہ به چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم کومه سریه یا کوم لښکر لیږه، نو هم به یې ور ته امیر او مشر ټاکه او هم به یې دوئ ته امر کاوه چې ددې امیر او مشر اطاعت وکړي .

هو!

.البته فقهاوو داستیذان له حکم څخه ځینې صور نونه مستثنی کړي، چې څو یې دادي : که چیر ته دامام په اجازه غوښتلو مصلحت ظاهره فوت کیده بیا اجازه ضرورنده ،چې ددې لپاره فقهاء ځینې بیلګې وړاندې کوي اووایې چې داجازې په صورت کې مسلمانانو ته ضرر رسیده او یا پرې دښمن ته قوت او دې فرصت کې ور ته پوځي مرسته رسیده ،نو اجازه دې وخت کې شرط نده، لکه چې احناف همدا صورت دعدم استیذان صورت بولي، او (فتاوی هندیه )کې کاږي چې : فإذا علم المسلمون أنهم يتضررون بترك القتال كأن يتقوى عدوهم بوصول المدد إذا تركوا قتاله فلا إذن للإمام .( الفتاوى الهندية ۲/ ۱۹۲)

یا لکه چې مالیکان ،شوافع او حنابله رح وایې چې که چیر ته په استیذان غوښتلو سره د دښمن دهزیمت او ماتې فرصت له لاسه واته ،نواجازه بیا مجاهد لپاره شرط نده ،لکه چې وایې – أن يترتب على الإذن فوات فرصة للنكاية بالعدو .

وقد نص على هذا المالكية(المصدر السابق ۳۴۹/۳)والشافعية(حاشية قليوبي وعميرة ۴/ ۲۱۸) والحنابلة(الإنصاف ۴/ ۱۵۱)

که چیر ته دمسلمانانو امام، نه چاته دجهاد فی

سبيل الله امر كاوه ،اونه يې ور ته دمجاهدينواعداد يا دپوځي روزنې او تربيت اسانتياوې برابرولي ، نو داحنافو او حنابلو په ګډون ګڼو كتابونودلاندې قيوداتو په رڼا كې داميرله اذن پر ته جهاد ته تلل جايز بللي ،چې ځيني هغه شرطونه دادي : ۱-چې جهاد فرض عين وي . ۲-چې په خروج كې يې ضرر اعظم له بقاځخه نه وي ، ۳-چې دامام لخواعامه منع نوي اعلان يا صادر شوي )

## دويم حالت :

هغه چې كفار دمسلمانانوپه هيوادونو او مناطقو ناڅاپه يرغل وكړي اوپدې ډول اضطراري حالاتو كې دمسلمانانو امام ته ځان رسول او ترې اجازه غوښتل سخته وي، نوفكر كوم دفقهاوو تر منځ به دې كې ، كوم اختلاف نه وي ،چې مسلمان دې داميرداجازې څخه پر ته ددښمن مقابلې ته وروداڅكي او داسلامي خاورې دفاع دې ترې وكړي او دې كې به كوم حرج نوي ،لكه چې دمدافعي دحالت پر وخت دكفارو مقابلې ته له اجازې نه په غير وردانګل دې مشهورو كتابونو كې په ښه وضاحت شته اوهلته موجود دي (المغني لابن قدامة (۱۳/ ۳۳) وكشاف القناع (۲/ ۳۹۷) وحاشية الروض المربع (۴/ ۲۶۹) ومغني المحتاج (۶/ ۲۴) ومواهب الجليل (۴/ ۵۴۰) وتبيين الحقائق (۳/ ۲۴۱، ۲۴۲) وحاشية ابن عابدين (۶/ ۲۰۵) والمحلى بالآثار لابن حزم (۵/ ۴۲۱).

## دليل يې دادى :

په أحكام المجاهد بالنفس ....في الفقه الإسلامي كتاب كې ،(مرعي بن عبد الله) داسې ليكلي چې كفارو درسول الله صلى الله عليه وسلم په اوښانو يرغل وكړ ،نو (سلمه بن الاكوع رض )ورسره له مدينې منورې څخه بهر مخ شو ،ورپسې شواو مقاومت يې ورسره درسول الله صلى الله عليه وسلم داجازې نه په غير وكړ ،خو رسول الله صلى الله عليه وسلم يې مدح وكړه او ويې ستايه او داسې وفرمايل چې : «خير رجالتنا سلمة بن الأكوع، وأعطاه سهم فارس وراجل»يعني حضرت سلمه يو نر او باتور سړى دى، او بيا يې ور ته يوه برخه دآس او بله دپلي وركړه ،نودادې دلالت كوي چې دكفارو ديرغل پر وخت دامام داجازې نه په غيرجهادته وتل روادي او كوم ډول ممانعت پكې نشته .

نوخبره به داسې راخلاصه كړو!

چې په تعرضي جهاد يا جهادالطلب كې دفقهاوواختلاف شتون لري ،خو غوره او راجح قول يې دادى چې له امام المسلمين څخه اجازه غوښتل شرط دي او كله چې كفار دمسلمانانو په سيمو يرغل وكړي ،نو بيا دچا اجازې ته اړتيا نشته او ددې نه په غير جهادته تلل روادي او دې كوم جرح نه ليدل كيږي !والله تعالى اعلم

